د شوراب د عملیاتو وروستي جزئیات:

# په (۴۲) ساعته فدایي عملیاتو کې (۳۹۷) بهرني او کورني عسکر ووژل شول ګڼ وسائط له منځه لاړل

د برید پیل:

د الخندق مبارکو عملیاتو په جریان کې د تیرې جمعې په شپه شاخوا ۱۲ بجې (۹) تنو فدایي مجاهدینو د شوراب په هوایي ډګر(باستین کمپ) چې د کابل اداره یې (۲۱۵) نمبرقول اردو بولي چاپه واچوله او پراخ عملیات یې ترسره کړل.

د برید جریان:

په عملیاتو کې (۹) تنو اتلو فدایي مجاهدینو هریو(مولوي متوکل بالله د هلمند، حافظ حامد، منتقم، نوید او عبدالرحمن د کندهار، بدرالدین او عمرمنصور د غزني، بدري او هلال د زابل) ګډون درلود چې په سپکو او درنو وسلو، لیزري وسائلو، مهماتو، نظامي لوازمو، اورغورځونکو او چاودیدونکو توکو سمبال وو.

لومړی مجاهدین په خورا تاکتیک سره وتوانیدل چې د شوراب میدان ته له (۳) خوا وو څخه داخل شي، په لومړي سر کې یې د بهرنیو ځواکونو میشت ځایونو، د داخلي عسکرو د کارنیزیون قومندانۍ او د کماندو عسکرو میشت ځایونو ته ځانونه ورسول او په ناڅاپي ډول یې په دښمن باندې ناتار ډزې، درنې چاودنې او بریدونه پیل کړل چې د تیرې شپې تر (۱۰) بجو پورې پوره (۴۲) ساعته روان وو.

د عملیاتو په لړ کې یې د دښمن عسکر وژل، وسائط، وسائل او تأسیسات یې له منځه وړل، په شپه کې یې د دښمن په باقي پاتې کومنډویانو لیزري عملیات کول او د ورځې له مخې یې د دښمن تحرکات کنترولول، ذخایرو، ډیپوګانو، هوايي میدانونو او ورکشاپونو ته یې اور ورته کول.

د برید تلفات:

د دغو بریمنو عملیاتو په اوږدو کې (۱۳۷) تنه امریکایي اشغالګر عسکر چې تر (۱۵) تنه په کې پیلوټان او ۱۸تنه د الوتکو اینجینران وو وژل شوي او (۱۹) نور ژوبل دي، همدا ډول د ګارنیزیون قومندان سراج او د کماندو عسکرو قومندان منصور په شمول (۲۶۰) تنه داخلي عسکر وژل شوي چې (۱۴۲) کماندویان او (۱۱۸) تنه نور عادي عسکر دي او (۷۳) تنه نور ټپیان دي.

همدا ډول يې په دوو (امريکايي او داخلي) ميدانونو کې د داخليانو (۲) څرخکې او د خارجيانو ګڼ شمير څرخکې او الوتکې، (۳۳) هاموې او (۱۹) ضربتي ټانګونه، (۲۷) عرادې رينجر موټر، (۲۱) عرادې انټرنشنل موټر، (۷) عرادې نظامي امبولانس (۱۱) عرادې د ټيلوډک ټانکر، (۱) د لوجسټيک ډيپو، (۱) د مهماتو ډک ډيپو، (۲) د تيلو ذخيرې، د الوتکو لوی ورکشاپ، د ټانکونو او رينجر موټرو ورکشاپ، ګڼ شمير کانتيرونه، ولاړې خيمې چې له خوراکي او نظامي توکو ډک وو، يو د الوتکو رادار او نور نظامي تأسيسا د ورکړل شوي پلان له مخې له منځه يوړل، نظامي تأسيسات يې تر ۴۰٪ سلنې ويجاړ کړل او ډير نور وسائل يې بيرته د دښمن په مقابل کې استعمال کړل.

د بريد هدف:

دغه لوی عمليات وروسته له هغه تنظيم او ترسره شول چې امريکايي وحشي اشغالګرو او کورنيو غلامانو يې سږ کال د افغانستان په لر او بر کې په ملکي خلکو ګڼې چاپې ووهلې، په خوب ويده خلک يې چې اکثره په کې ښځې اوماشومان وو شهيدان او ټپيان کړل، د خلکو کورونه يې په بمونو والوزول، مساجد، مدارس، مکاتب، روغتيايي کلينيکونه، بازارونه او عامه ميشت ځايونه يې انفجار، بمبار او ويجاړ کړل، افغان مظلوم او بيچاره اولس ته يې په ځاني زيانونو سربيره درانه مالي زيانونه هم واړول.

د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا مجاهدينو ته لارښونه وشوه چې د بهرني اشغالګر او کورني غلام دښمن مشترکې ځالې، نظامي اډې، استخباراتي کوډلې او د هيواد په ضد د شومو پلانونو د طرحو کولو مراکز تر درنو ګوزارونو لاندې ونيسي، ترڅو مجرمينو ته د شومو کړنو جزا ورکړل شي، جنايت کاران د درنې محاسبې سره مخ شي او پاتې شوني يې درک کړي چې دا وياړلی ملت هيڅکله هم دې ته نه دی تيار چې څوک يې له مبارزې پښېمانه کړي، د ازادۍ حق يې وتروړي، په زور سره يې هسکه شمله او غاړه ټيټه کړي او له اسلامي ارزښتونو څخه يې منصرف کړي.

د بريد پيغام:

دغه بريمن عمليات امريکايي اشغالګرو او شريکانو، ورسره کورنيو تالی څټو غلامانو ته په ښکاره ډول جوتوي چې زموږ د خبرو او عمل ترمنځ توپير نشته، موږ چې د افغان غيرتي او وياړلي ملت په استازولۍ کومه ژمنه وکړو هغه به پوره کوو، موږ به له جنايت کارانو سره حساب کتاب کوو او د خپل ملت او مقدساتو کسات به ترې اخلو.

که له دې هيسته هم دوی د عقل او منطق لاره خپله نه کړي، په مظلوم افغان اولس خپل ظلم او وحشت ته دوام ورکړي، نو بيا ژمنه کوو چې له دې څخه د بدو حالاتو انتظار دې وکړي، موږ به په دا ډول افتخار آميزه او معجز آسا ډول د خپل ملت او دين له حقوقو او حدودو څخه دفاع وکړو، په زور سره به د دښمن لاس بند کړو او خپل هيواد به له اشغال او شر څخه وژغورو. ان شاءالله تعالی و ماذالک علی الله بعزيز

